ورځپاڼه
# هیواد


مولوي امیرخان متقي:

## افغانان دې د اسلامي نظام تر چتر لاندې ورورولي وپالي

د بهرنیو چارو وزیر مولوي امیرخان متقي د ریاض العلوم دیني مدرسې د تعلیمي کال د پای مراسمو کې ویلي: اوسمهال هېواد کې بشپړ اسلامي نظام حاکم دی او افغانان دې له ډلو ټپلو جوړولو ډډه وکړي او د اسلامي نظام تر چتر لاندې دې ټول ورورولي وپالي. نوموړي زیاته کړې: افغانان له څلورو لسیزو راهیسې د بهرنیو اشغالګرو او کورنیو لاسپوڅو په هڅو نه دي پرېښودل شوي چې د امن سا واخلي. مولوي امیر خان متقي د خپلو خبرو پرمهال د هېواد د آبادۍ او پرمختګ لپاره د دیني زده کړو ترڅنګ د عصري زده کړو په ترلاسه کولو ټینګار کړی او زیاته کړې یې ده، چې ټول باید د هېواد په جوړولو کې برخه واخلي. دا په داسې حال کې ده، چې د اسلامي امارت زعیم عالیقدر امیرالمؤمنین (حفظه الله) کندهار پوهنتون کې یوې لویې غونډې ته ویلي، چې اسلامي امارت د علم د پرمختګ لپاره ټولې آسانتیاوې برابرې کړې او زیاته کړې یې ده، چې مدرسه او پوهنتون نور سره یو دي او اسلامي امارت یې ملاتړ کوي.


مؤسس: عبدالرووف بینوا | د تاسیس کال ۱۳۲۸ لمریز | دوشنبه د شعبان المعظم ۱۸ مه ۱۴٤٦ق کال، د سلواغې ۲۹ مه ۱۴۰۳ ل کال، د فبروري ۱۷ مه ۲۰۲۵م کال، خصوصي ګڼه ۵۴۶ مه، پرله پسې ګڼه ۶۳۶ مه، اتمه


## د کندهار - هرات وسپنیزې کرښې د تفصیلي ډیزاین چارې پیل شوې




د اسلامي امارت ویاند مولوي ذبیح‌الله مجاهد وایي، چې کندهار کې، د کندهار- هرات وسپنې پټلۍ د ۷۳۷.۵ کیلومتره پروژې د تفصیلي سروې او ډیزاین چارې پیل شوې. نوموړي پر خپله اېکس‌پاڼه لیکلي، ((د دې زیربنایي پروژې په بشپړېدو سره به د افغانستان له لارې ترکمنستان او ایران له پاکستان سره د وسپنې پټلۍ له لارې وصل شي.)) ښاغلي ذبیح‌الله مجاهد دغه پروژه د سوداګرۍ او ترانزیټ لپاره مهم اقتصادي ګام بللی. همدارنګه په دې اړه د ټولګټو وزارت ویاند محمد اشرف حق شناس وایي؛ د کندهار – هرات د ۷۳۷.۵ کیلومتره وسپنیزې کرښې د تفصیلي ۳مخ

د ایران سفیر:

## له افغانستان سره د اقتصادي اړیکو د لاپیاوړتیا په لټه کې یو

کابل کې د ایران سفیر علي رضا بیګدلي ویلي، ایران هڅه کوي د تهران او کابل ترمنځ د سوداګرۍ، حمل او نقل، بارورونکو موټرو او د خلکو پرمخ د تګ راتګ ټولې نښلونکې لارې برابرې کړي. نوموړي فراه ولایت ته د خپل سفر په ترڅ کې ویلي، ایران افغانستان سره د اړیکو د پراختیا غوښتونکی دی او هڅه کوي افغانانو سره اقتصادي اړیکي پراخې کړي. ښاغلي بیګدلي زیاته کړې، کابل کې ۳مخ



## د افغانستان فضا د ټولو هېوادونو د ملکي الوتنو پر مخ پرانیستې ده

د ترانسپورټ او هوايي چلند وزارت وایي، چې اوسمهال د افغانستان فضا له ټولو امنه او د ټولو ملکي عبوري پروازونو پر مخ پرانیستې ده. د یاد وزارت ویاند حکمت‌الله اصفي له ملي تلویزیون سره په خبرو کې ویلي، چې اوسمهال د دوو کورنیو شرکتونو ترڅنګ ۷ نړیوال شرکتونه هم افغانستان ته الوتنې لري. نوموړي زیاته کړې؛ د هېواد په ۲۷ هوایي ډګرونو کې، چې پنځه یې نړیوال دي، د مسافرو لپاره ګڼې اسانتیاوې رامنځته شوې دي. د ترانسپورټ او هوايي چلند وزارت مسؤولین ټینګار کوي، چې هوايي چلند د هېواد د اقتصادي ودې او پرمختګ مهمه برخه ده او اسلامي امارت دې برخې ته ځانګړې پاملرنه کوي.




## لوګر کې ۳۰ کانونه تثبیت شوي

د لوګر د کانونو او پترولیم ریاست مسؤولین وایي، چې د ولایت په مرکز پل‌علم او ولسوالیو کې ۳۰ کانونه تثبیت شوي دي. د دغه ولایت د کانونو او پترولیم رئیس مولوي نقیب‌الله احمدفرقاني پل‌علم کې خبریالانو ته ویلي، لوګر کې د وروستیو څېړنو له مخې ۳۰ کانونه تثبیت شوي چې له دې یې د دوو کانونو د عملي استخراج چارې هم پیل شوي دي. ده وویل: یادو کانونو کې مس، کرومایټ، نفرایټ، تالک، ازبست، کلیست، ابرک او د قیمتي ډبرو یوشمېر نور مهم کانونه شامل دي. فرقاني زیاته کړه، په نوي کال کې هم د لوګر په مرکز پل‌علم او یوشمېر نورو ولسوالیو کې شته کانونه د قانوني استخراج لپاره داوطلبي ته سپارل کېږي، چې په یادو کانونو کې به لسګونو وزګارو کسانو ته د کارکولو زمینه برابره شي. د لوګر دکانونو رئیس وایي: روان کال یې د دې ولایت د کانونو له ۳مخ



## هند ته د افغانستان صادرات زیات شوي

هندي رسنیو خبر ورکړی، چې په تېرو دوو کلونو کې له افغانستان څخه د دې هېواد واردات زیات شوي او دغه هېواد له افغانستان سره د ۶۴۲،۲۹ میلیونه ډالرو په ارزښت سوداګریزه راکړه ورکړه کړې ده.

د دې راپور له مخې، له افغانستان څخه هند ته له ټولو مهم صادراتي توکي کرنیز محصولات وو، چې پکې زعفران، ممیز، انځر، منې، کچالو، بادام، زردالو، پیاز، انار او چهارمغز شامل وو.

## د سپین بولدک له لارې ۴۸ کورنۍ هېواد ته راستنې شوې

د کندهار د سپین بولدک کډوالو او بېرته راستنېدونکو چارو ریاست مسئولینو د سپین بولدک له لارې د ۴۸ کورنیو د راستنېدو خبر ورکړی دی. دغه ولایت د تخته پل ولسوالۍ په انځرګي کمپ کې د کډوالو د ثبت او تثبیت کمېټې مسئولینو باختراطلاعاتي آژانس ته ویلي، د تېرې جمعې په ورځ ۱۸ کورنۍ چې شمېر یې ۸۵ تنه کېږي او د شنبه په ورځ ۳۰ کورنۍ چې د وګړو شمېر یې ۱۷۰ تنه کېږي او همدارنګه ۱۹ تنه نور افغانان چې تازه د پاکستان له بندخونو څخه ازاد شوي وو، ۳مخ

## خوست کې یو شمېر پروژې ګټې اخیستو ته وسپارل شوې

د خوست ښاروالۍ له بودیجې څخه د ۷۴ میلیونه افغانیو په لګښت ۷ پرمختیایي پروژې بشپړې او ګټې اخیستنې ته سپارل شوې دي. د دغو پروژو د پرانیستې په مراسمو کې د خوست ولایت مرستیال مولوي محبوب شاه قانت، د خوست ښاروال قاري بسم‌الله بلال هڅې وستایلې او ویې ویل، چې د تېرو کلونو په جریان کې د ښار بڼه بدله شوې او ګڼ پرمختیایي کارونه ترسره شوي دي. ورته مهال د خوست ښاروال قاري بسم‌الله بلال ویلي، چې په یادو پروژو کې یو کیلومتر په اوږدوالي یو سړک ۱۰ کیلومتره لښتي او ۸۰ پلچکونه شامل دي، چې د ښار د تفصیلي پلان له مخې پلي شوي دي. نوموړي زیاته کړه، چې د ۱۴۰۳ مالي کال لپاره ۳۲ پروژې پلان شوې وې، چې د ځینو کارونه بشپړ شوي او پاتې نورې به یې ډېرې ژر بشپړې شي. ده د ښاروالۍ د عوایدو د زیاتوالي په اړه وویل، چې په تېرو دوو کلونو کې عواید زیات شوي او په پرله‌پسې ډول د ۱۴۰۱ کال کې ۱۸۱ میلیونه افغانۍ په ۱۴۰۲ کال ۳مخ



## د فراه ښاریانو ته برښنا برابره شوه

د فراه د برښنا ریاست مسئولین وايي، چې د فراه ښار د اوسېدونکو لپاره د څه باندې ۸ میلیونه افغانیو په لګښت ۳.۸ میګاواټه برښنا برابره شوې ده. د یاد ولایت د برښنا شرکت عملیاتي مدیر صلاح الدین وایي، چې د فراه ښاریانو لپاره د ۸ میلیونه ۹۲۰ زره ۸۹۰ افغانیو په لګښت د دریو دیزلي جنراتورونو په وسیله ۳.۸ میګاواټه برښنا برابره شوې ده. د نوموړي په وینا، له دې وړاندې د فراه ښار د یوه ډیزلي جنراتور په وسیله ۱۲۵۰ کیلو واټه برښنا درلوده، چې د یادو دریو نورو جنراتورونو په وسیله یې ۳.۸ میګاواټه برښنا برابره او د فراه ښار ګڼو ناحیو ته به په بشپړه توګه برښنا ورکول شي. ورته مهال د فراه ښاریانو د یادې برښنا په برابرېدو خوښي ښودلې او وایي، چې د یادې برښنا شته ستونزې هوارې او په بېلابېلو برخو کې به ورته ګڼې اسانتیاوې رامنځته شي.



## قزاقستان: د افغان - ترانس پروژې د پلي کېدو لپاره هڅې کوو

قزاقستان د افغان – ترانس پروژې جوړېدو ته پاکستان او نورو خواوو هڅوي. د قزاقستاني رسنیو د راپور له مخې، د قزاقستان د ترانسپورټ وزارت ورمه ورځ ویلي، چې د دوی د ریلارو د ملي شرکت رئیس (دامیر کوژاخامیتوف) پاکستان ته تللی، چې د افغان – ترانس ۳مخ



## ننګرهار کې د بېلابېلو جرمونو په تور نږدې ۲۰۰۰ تنه نیول شوي

د ننګرهار د امنیې قوماندانۍ مسؤولین وایي، چې د امنیتي ځواکونو هڅو د جرایمو کچه د پام وړ را کمه کړې او سږکال نږدې ۲ زره کسان د بېلابېلو جرمونو په تور نیول شوي دي. د ننګرهار د امنیې قوماندانۍ مرستیال مولوي محمد طاهر مبارز وایي، چې د روان کال په تېرو لسو میاشتو کې د دې ولایت پولیسو ۱۹۷۶ کسان د بېلابېلو جرمونو په تور نیولي او عدلي او قضایي ارګانونو ته سپارلي دي. د نوموړي په وینا، د یادې مودې په جریان کې په جلال‌اباد ښار ۳مخ






# د بېکارۍ حل؛ دولتي دندې که خصوصي فرصتونه؟

په افغانستان کې د بېکارۍ ستونزه ورځ تر بلې جدي کېږي او ډېر خلک یې د حل یوازینۍ لاره د دولتي ادارو د وظیفو زیاتوالی ګڼي. دا تفکر نه یوازې محدود دی، بلکې عملي بنه هم نه لري. که څه هم حکومت د خلکو د ژوند ښه والي ته ژمن وي، خو یوازې دولتي بستونه نشي کولای د بېکارۍ ریښه وباسي، ځکه چې دولتي ادارې محدودې بودیجې او ټاکلی تشکیلاتي ظرفیت لري او که حتی زیاتې هم شي، بیا هم د ټولنې د بېکارو کسانو لپاره بسنه نه‌شي کولی.

اصلي حل د خصوصي سکتور پیاوړي کول، د کوچنیو او منځنیو کاروبارونو ملاتړ او خلکو ته د اقتصادي فرصتونو برابرول دي. په ډېرو پرمختللو هېوادونو کې د بېکارۍ د کچې کمښت د خصوصي پانګونې، نوښت او ابتکار له لارې ترلاسه شوی. که افغانستان هم غواړي د دې ستونزې حل ومومي، نو باید د خلکو د سوداګرۍ، صنعت او تولیدي فعالیتونو لپاره زمینه برابره شي.

حکومت ته لازمه ده چې د کوچنیو کاروبارونو د ودې لپاره ځانګړې پالیسۍ جوړې کړي، اسانتیاوې برابرې کړي او د تمویل فرصتونه زیات کړي. لکه څنګه چې د کرنې، مالدارۍ، د شاتو تولید، صنایعو، خدماتو، ټرانسپورټ او نورو برخو کې بې‌شمېره فرصتونه شته، که حکومت د پورونو، تخنیکي زده‌کړو، بازارموندنې او قانوني اسانتیاوو له لارې ملاتړ وکړي، نو زرګونه افغانان به پر ځان بسیا شي او د وظیفې پر ځای به د کار ورکولو جوګه شي.

له بلې خوا، خلک هم باید دا درک کړي چې د کار یوازینۍ معنی دولتي وظیفه نه ده، بلکې هر هغه عایداتي فعالیت چې مشروع او د ټولنې د اړتیاوو ځواب وي، د کار بڼه لري. ځوانان باید د مهارتونو زده‌کړې ته مخه وکړي، د سوداګرۍ، کرنې او صنعت په برخو کې فکر وکړي او د نوښت له لارې د اقتصادي ودې لپاره هڅې وکړي. افغانستان د سوداګرۍ، تولید، کرنې او خدماتو پراخ ظرفیت لري. که دا ظرفیتونه مدیریت شي، نه یوازې د بېکارۍ ستونزه حل کېدای شي، بلکې هېواد به د اقتصادي ودې پر لور لاړ شي. د حل اساسي لاره دا ده چې خصوصي سکتور ته وده ورکړل شي، د خلکو د کار کولو فرهنګ بدل شي او حکومت د خلکو د اقتصادي خوځښت لپاره جدي ملاتړ وکړي.

# اقتصادي بندیزونه؛ له اسلامي نظام سره د غرب ښکاره دښمني



ځواک یوسفزی

د افغانستان پر وړاندې د لویدیځو هېوادونو د اقتصادي بندیزونو تر شا یوازې اقتصادي فشارونه نه دي، بلکې دا د یوې سترې نړیوالې هڅې برخه ده چې هدف یې د افغانستان د اسلامي امارت کمزوري کول او د دې هېواد خپلواکي تر سوال لاندې راوستل دي.

لویدیځ هېوادونه، په ځانګړې توګه امریکا، غواړي په دې بندیزونو سره افغانان دې ته اړ کړي چې یوازې د نړیوالې مرستې له لارې خپل اقتصاد پرمخ بوزي او د هغوی د ارزښتونو تابع شي. دا د دې لپاره دی چې د افغانستان اسلامي امارت کمزوری شي او خلکو ته دا پیغام ورکړي چې که د لوېدیځ مرستې نه وي، نو افغانستان به هیڅ پرمختګ ونه کړي.

خو که د افغانستان طبیعي منابعو ته وګورو، حقیقت بل شان دی. افغانستان د طلا، مسو، زغالو، لیتیمو او نورو قیمتي موادو لرونکی هېواد دی، چې ارزښت یې میلیاردونو ډالرو ته رسېږي. افغانان دا منابع نه یوازې د اقتصادي خپلواکۍ لپاره کارولی شي، بلکې دا منابع له اسلامي ارزښتونو سره سم د هېواد د پرمختګ لپاره یوه ستره سرچینه ده. د دې طبیعي شتمنیو پراختیا د افغانانو لپاره یوه مهمه دنده ده چې د غرب پر بندیزونو او فشارونو سربېره خپلې سرچینې وکاروي. افغانستان د زراعت په برخه کې هم د نړۍ په هغو هېوادونو کې راځي چې د خپلو محصولاتو پراختیا یې د پام وړ ده.

دا ټول شواهد ښيي چې افغانان د خپلو داخلي منابعو او اسلامي اصولو په مرسته کولی شي خپل اقتصاد پیاوړی کړي، د لوېدیځ د بندیزونو په شمول او د خپلواکۍ په لاره کې خپلې مبارزې ته دوام ورکړي.

په دې توګه، د افغانستان د اسلامي امارت د کمزوري کولو هڅې د اسلام ضد یوه ښکاره لاره ده، چې لوېدیځ هېوادونه غواړي د خپلو اقتصادپالو او سیاسي اهدافو لپاره افغانان په یوه داسې حالت کې واچوي چې یوازې د هغوی د مرستو په سترګه ورته ګوري. خو حقیقت دا دی چې افغانان نه یوازې د دې فشارونو پر وړاندې مقاومت کوي، بلکې خپل دیني او ملي هویت ته ژمن پاتې کېږي او د خپلواکۍ په لټه کې خپله لاره تعقیبوي.

د افغانستان اسلامي امارت په دې پوهېږي چې لویدیځ هڅه کوي د بندیزونو له لارې هېواد اقتصادي ستونزو ته ورټېل کړي، خو د اسلامي امارت مشران په دې باور دي چې افغانستان د خپلو طبیعي منابعو او داخلي قوتونو له لارې د دې فشارونو په وړاندې مقاومت کولی شي. د افغانستان په اقتصاد کې د زراعت، کانونو او سوداګرۍ برخه په زیاتیدو ده او دا د اسلامي امارت لپاره یو فرصت دی چې په خپلواک ډول خپل اقتصاد پیاوړی کړي او د بیرونیو فشارونو پر وړاندې خپله لاره پرمخ بوزي.

د لویدیځ د اقتصادي بندیزونو تر شا اصلي هدف د افغانانو د هیلې ماتول او د دوی د ذهني تسلط لپاره یوه کړنلاره ده. بندیزونه، چې د بانکدارۍ، نړیوالو سوداګریزو اړیکو او منابعو په مخنیوي کې تمرکز کوي، افغانان د خپلو ورځنیو اړتیاوو د پوره کولو لپاره ستونزې پیدا کوي، خو د لویدیځو هېوادونو د دې سیاست اصلي موخه یوازې پر امارت اقتصادي فشار نه، بلکې د ټول ملت پر روحیه منفي اغېزه کول دي. دوی غواړي چې افغانان د خپل اسلامي نظام پر ضد را وپاروي، څو په داخلي توګه د بې باورۍ فضا رامنځته کړي او د حکومت پر وړاندې بې اعتنایي خپره کړي.

مګر اسلامي امارت د دې بندیزونو تر څنګ د خپلواکې اقتصادي ستراتیژۍ لپاره پلان لري. په دې کې د داخلي منابعو په کارولو باندې زیات تمرکز شوی دی، لکه د کانونو، زراعت او د هېواد دننه سوداګرۍ پراختیا. افغانستان، چې د معادنو، کرنې او نورو طبیعي منابعو پر بډایو وړتیاوو باندې اتکا لري، د اسلامي امارت مشران په دې باور دي چې د لویدیځ له فشارونو سره سره کولای شي خپل اقتصاد د خپلواکۍ په لور پرمخ بوزي.

په دې توګه، افغانان یوازې د خپلې خاورې نه بلکې د خپلو سرچینو پر بنسټ ژوند کولای شي او د اقتصادي بندیزونو پر وړاندې د مقاومت یوه مؤثره لاره غوره کولای شي. د افغانستان اسلامي امارت په دې باور دی چې که څه هم لویدیځ د مختلفو فشارونو له لارې په هېواد کې اقتصادي ستونزې رامنځته کوي، خو د افغانستان طبیعي سرچینې او د خلکو عزم کولی شي د دې ستونزو په مقابل کې لویه بریا ترلاسه کړي. د اسلامي امارت مشران پوهېږي چې د افغانستان د بقا لپاره باید پر خپلو داخلي منابعو تکیه وکړي، نه یوازې د بهرنیو مرستو په هکله. د دې هدف لپاره، امارت د زراعت، کانونو او انرژۍ د سکتورونو پراختیا ته وده ورکړې او دا بېلابېلې ستراتیژیکې پالیسۍ ترسره کوي ترڅو د افغانستان اقتصاد یو مستحکم او پیاوړی بنسټ ولري.

د لویدیځ اقتصادي بندیزونه یوازې د افغانستان د پراختیا مخه نه نیسي، بلکې دا د افغانانو د روزمره ژوند یوه ستره ستونزه جوړوي، مګر د دې فشارونو تر شا هغه لویې دسیسې پټې دي چې د لوېدیځ هدف یې د افغانانو د مقاومت روحیه کمزوري کول دي. د لویدیځ د دې کړنو اصلي موخه دا ده چې د افغانانو باور د خپل اسلامي نظام پر ضد را کم کړي، ترڅو په راتلونکي کې له اسلامي امارت سره د خلکو ملاتړ کم شي. له همدې امله، د افغانانو لپاره اړینه ده چې د دې بندیزونو په وړاندې په هوښیاره توګه مقاومت وکړي او خپل اقتصادي فعالیتونه پراخ کړي. د دې لپاره، اسلامي امارت د نړیوالو اړیکو د پراختیا لپاره هم هڅه کوي. چین، ایران، روسیه، ترکیه او نور اسلامي هېوادونه د افغانستان لپاره د اقتصادی ملاتړ مهمې منابع دي، چې په دې توګه د افغانستان اقتصاد کولی شي د لویدیځو بندیزونو پر وړاندې خپل استقلال او پیاوړتیا وساتي.

که افغانان په دې پوه شي چې د هغوی اقتصادي ستونزې یوازې د لویدیځ د دسیسو برخه ده، نو هغوی به د خپلې کورنیو تولیداتو، سوداګرۍ او داخلي پانګونې له لارې د دې بندیزونو په وړاندې قوي مقاومت وکړي.

د افغانستان عام خلک هم د دې بندیزونو له امله له جدي اقتصادي ستونزو سره مخ دي، مګر باید دا حقیقت په یاد ولري چې دا ستونزې د لویدیځ د اقتصادي جګړې یوه برخه ده. که عام افغانان په دې پوه شي چې د دوی د مشکلاتو اصلي عامل د لویدیځ په غربي سیاستونو کې دی، نو هغوی به د خپل نظام د ملاتړ لپاره یووالي ته دوام ورکړي. افغانان باید د دې سختو شرایطو پر وړاندې د خپل اسلامي نظام ملاتړ وکړي، د کورنیو تولیداتو له لارې د اقتصاد پیاوړتیا ته وده ورکړي او د لویدیځ د دسیسو پر وړاندې یووالی ته دوام ورکړي، ځکه چې یوازې د خپلواک اسلامي نظام په ملاتړ سره موږ کولی شو د غرب د استعماري او اقتصادي فشارونو پر وړاندې خپل هېواد ته د پراختیا او ثبات لاره پرانیزو.

اسلامي امارت نه یوازې د خپلو کورنیو منابعو په کارولو سره کولی شي د اقتصادي بندیزونو فشارونه کم کړي، بلکې له نړیوالو همکارانو سره د اقتصادي

۳مخ

# کمال خان بند د هېواد په کچه یوه ستره ملي پروژه ده

شاه محمود درویش

کمال خان بند له شک پرته چې د هېواد په کچه یوه ملي او حیاتي پروژه ده، نو په واقعیت سره چې په نیمروز ولایت کې د کمال خان بند د چارو د بشپړېدو او ګټې اخیستنې په هکله هر پرمختګ په ټوله کې هېوادوالو ته د خوښۍ احساس ور په برخه کوي، ځکه چې دغه یوه ملي پروژه ده او بشپړېدو ته یې افغان غیرتي ولس له ډېرو کلونو په تمه دی، هېره دې نه وي چې په دې وروستیو کې له نیکه مرغه د کمال خان بند دریم فاز پروژه ګټې اخیستوته سپارل شوې ده، د دغې پروژې ګټې اخیستنې ته د سپارلو د مراسمو پیل د اوبو او انرژۍ وزارت د سرپرست، ځینو نورو مرکزي او سیمه ییزو مسؤلینو او د اسلامي امارت د مشرانو او د ګڼ شمېر ځایي اوسېدونکو په شتون کې د نوموړي بند په ساحه کې ترسره شوې.

د اوبو او انرژۍ وزارت سرپرست ګټې اخیستنې ته د دغې پروژې د سپارلو په مراسمو کې څرګنده کړې، چې اسلامي امارت په هېواد کې امنیت، اسلامي نظام او اقتصادي پراختیا رامنځته کړې، په دې اساس د افغانستان له خلکو څخه تمه کېږي چې د دښمن د تبلیغاتو پروړاندې ویښ او بیدار واوسي. نوموړي ټینګار کړی چې داسلامي امارت رهبرۍ د وچکالۍ وضعیت او د خلکو اړتیاوو ته په کتو دهېواد د اوبو مدیریت ته ژمنه ده او په دې هکله ګاونډیو هېوادونو ته ډاډ ورکوي چې د دغه بند له جوړولو څخه به هیڅ هېواد زیانمن نه شي.

له بلې خوا د اوبو او انرژۍ وزارت معین په دغو مراسمو کې یادونه کړې چې د کمال خان بند د سېلابونو د کنټرولولو او د اوبو د مدیریت په موخه جوړ شوی او د اوبو او انرژۍ وزارت ډاډ ورکوي چې د دغه بند په جوړېدلو سره به هېڅ هېواد زیانمن نه شي.

په همدې حال کې د کرنې وزارت سرپرست، په دغو مراسمو کې یادونه کړې، چې د اسلامي امارت مشران د افغانستان خلکو ته د خدمتونو د وړاندې کولو لپاره په بېلابېلو برخو کې شپه او ورځ په صداقت سره هڅې کوي. همدارنګه د نیمروز والي د اسلامي امارت د رهبرۍ له خوا دغه ولایت ته د پاملرنې په ستایلو سره، یادونه کړې، چې په دې وروستیو کې له نېکه مرغه د نیمروز خلک په دغه ولایت کې د څو لویو پروژو د پرانیستې شاهدان دي.

د یادونې وړ ده چې کمال خان بند د هېواد له لویو بندونو څخه دی، چې د نیمروز ولایت په چهار برجک ولسوالۍ کې د موسمي سېلابونو د کنټرول، د ۵۲ میلیونه متره مکعبو اوبو د ذخیره کولو او د ۶ مېګاواټه برق د تولید د وړتیا په موخه پلی شوی دی، دغه بند د اوبو وضعیت ته په کتو سره کولی شي ۱۷۴۰۰۰ هکتاره کرنیزه ځمکه تر خړوبولو لاندې ونیسي.

نو دې ټکي ته موهم باید پام وي چې د کمال خان بند د اوبو د زیرمه کولو، د سرحدي او ګرمو ولایتونو د برښنا د تولید، د کرنې لپاره د اوبو د برابرولو، د سیمه ییز اقتصاد د ودې او پیاوړتیا او د هېواد د ثبات د ټینګښت په برخو کې اغیزمن دی.

البته د کمال خان بند جوړول اوترې ګټه اخیستل له شک پرته چې ښه لاس ته راوړنه ده، ځکه چې د دغه بند جوړېدل د برښنا پر تولید سربېره خلکو ته د سولې او آرامۍ د فضا او د ښار په ښکلا کې د پام وړ اغیزه لري، دغه بند د کارموندنې او د بزګرانو د کاري پرمختګ په برخه کې هم ګټور دی او



په هېواد کې د وچکالۍ په مخنیوي او د اوبو د کنټرول په برخه کې هم مثبت رول لري.

نو دا چې د کمال خان بند دریم فاز پروژه ګټې اخیستوته سپارل شوې، سره له دې چې د نیمروز ولایت ټولو میشتو شریفو خلکو ته یو ښه زیری دی، د دې ترڅنګ ټولو افغانانو ته هم د خوښۍ او ویاړ ځای دی، ځکه وروسته له دې به د افغانستان د اسلامي امارت له لوری ان شاءالله په ټوله کې د هېواد د اوبو د ښه مدیریت لپاره لا ډېر کار وشي ترڅو زموږ اوبه په هېواد کې دننه زموږ خپلې پراخې دښتې خړوبې ، شاړې میرې سمسورې او زرغونې کړي او هم په هېواد کې دننه زموږ برښنایي اړتیاوې پای ته ورسېږي، البته د افغانستان په شان وچې کې ایسار هېواد ته چې ډېرې خوږې اوبه یې بهرته بهیږي دا ښایي چې د اقتصادي ودې لپاره هم یو ښه زیری اوسي خو خلک د دغو بندونو دډېریدو تمه لري، له شک پرته چې د افغانستان اسلامي امارت د مشرتابه له خوا دهېواد په بیلابیلو برخو کې د ډول ډول پروژو د تطبیق ترڅنګ د برښنا د بندونو د جوړولو، رغولو او هم په بندونو کې د اوبو ذخیره کولو ته تر یوحده پام ور اوښتی دی چې دا اقدام واقعاً ورځ تر بلې هېواد د اقتصادي ځان بسیاینې پر لور بیایي.

همداراز د ویلو وړ ده چې افغانستان دخپلو سترو طبیعي سرچېنوکه هغه کاني زیرمي یا هم اوبه دي، نو د سم مدیریت په برکت یې کولای شي په راتلونکو څو کلونو کې پرنسبتاً متوسط سوکاله هېواد بدل شي او باید هم دغه هدف ترلاسه کړي او پرخپلو پښو ودرېږي، ځکه د پردیو په مرستو ډېره لګول تیروتنه ده او د ټولو افغانانو اساسي هدف باید د نورو له احتیاجه راوتل وي او داهم واقعیت دی چې اوبه زموږ عزت او د دغه عزت ساتل زموږ ملي هدف دی، نو په هېواد کې د اوبو او هم د برښنا د بندونو جوړول او رغاول اوله هغو څخه د استفادې په موخه دهر ډول ټولګټوپروژو تطبیق هغه څه دي چې په کور دننه مو ګڼ شمیر اړتیاوې پوره کوي، د دې ترڅنګ د ښه مدیریت په لړکې کولای شو چې دهېواد موجودې اوبه د اقتصادي ځان بسیاینې لپاره په غوره توګه وکاروو، نو دمګړۍ واقعاً چې داوبو او برښنا د بندونو د جوړولو او رغاولو دپروژو د پلي کېدو په برخه کې د اسلامي امارت هڅې دقدر وړ دي، پاک الله (ج) دې دوی ته لاهم ددې توان، توفیق او همت ورکړي چې په ټول هېواد کې د ډول ډول سترو ملي پروژه په تطبیق سره د هېواد او هېوادوالو اقتصاد پیاوړی، ستونزې یې حل، ملي وحدت لا کلک او تلپاتې هوسانه یې په برخه کړي.




## موضوع: نشر اعلان ۲ ساحه معدن کاری لوگر و کندهار

وزارت معادن و پترولیم قرارداد ۲ ساحه معدن سنگ های مرمر و رخام مربوطات ولایت لوگر و کندهار را که را که مشخصات آن ضم جدول میباشد، غرض جلب علاقه مندان به اعلان میسپارد. علاقه مندان میتوانند اعتبار از تاریخ ۱٤۰۳/۱۱/۲۳ الی ۱٤۰۳/۱۲/۲۲ درخواست های شان را به ریاست عمومی کادستر و تنظیم منرالها تسلیم نموده و اسناد لازم را بعد از تحویلی مبلغ ۳۷۵۰۰ افغانی که پول غیر قابل برگشت میباشد، بدست آورده میتوانند

### جدول مشخصات ساحات معدنی تحت اعلان به مقیاس کوچک

**تاریخ اعلان ۱٤۰۳/ ۲۳/۱۱ الی ۲۳/۱۲/۱٤۰۳**

| شماره | ولایت | ولسوالی | نام ساحه | نوع مواد معدنی | مساحت (Km²) | کوردینات N-Latitude S | N-Latitude M | N-Latitude D | E-Longitude S | E-Longitude M | E-Longitude D |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | لوگر | خوشی | کوه اسپین اورتک قریه مانی خیل | سنگ مرمر | ۰,۸۳۳۶۸۲ کیلومتر مربع | ۳۲,۹۵۶ | ۴ | ۳٤ | ۴۵,۰۹۰ | ۱۶ | ٦۹ |
| | | | | | | ۱۹,۰۶۶ | ۴ | ۳٤ | ۱۱,۸۹۰ | ۱۷ | ٦۹ |
| | | | | | | ۴,۷۴۷ | ۴ | ۳٤ | ۵,۵۸۶ | ۱۷ | ٦۹ |
| | | | | | | ۰,۸۸۵ | ۴ | ۳٤ | ۳۶,۸۹۰ | ۱۶ | ٦۹ |
| | | | | | | ۸,۵۵۶ | ۴ | ۳٤ | ۱۵,۴۰۰ | ۱۶ | ٦۹ |
| ۲ | کندهار | ریگستان | کلوندو کاروان راه | سنگ رخام | ۰,۹۷۵۵۱۶ کیلومتر مربع | ۵۲,۶۰۰ | ۴۲ | ۲۹ | ۱۹,۷۰۰ | ۴۸ | ٦٤ |
| | | | | | | ۳۸,۵۰۰ | ۴۲ | ۲۹ | ۹,۹۰۰ | ۴۸ | ٦٤ |
| | | | | | | ۹,۵۰۰ | ۴۳ | ۲۹ | ۴,۶۰۰ | ۴۷ | ٦٤ |
| | | | | | | ۲۲,۹۰۰ | ۴۳ | ۲۹ | ۱۲,۱۰۰ | ۴۷ | ٦٤ |

ترتیب کننده: ریاست تنظیم امور مقدماتی قرادادهای معادن کوچک
منظور کننده: ریاست عمومی کادستر و تنظیم منرالها

### اعلان داوطلبی

اعلان داوطلبی صالون سینما پامیر منزل اول و دوهم واقع ناحیه (۱) شهر کابل!
ریاست عمومی املاک دولتی وزارت مالیه صالون سینما پامیر دارای (۲) منزل، منزل اول به مساحت (٦۲۹,۹۱) مترمربع و منزل دوم به مساحت (۲۹۰,٦۱) مترمربع شامل اطاق های لایتینگ که مساحت مجموعی ( ۹۱۷,۵۲ ) مترمربع میباشد واقع تعمیر ۱٤ منزله سینماپامیر مربوط ناحیه اول شهر کابل را جهت فعالیت فرهنگی به کرایه ابتدائی ماهانه مبلغ ( ۵۵۹۲۹۹ ) افغانی به شکل آفر سربسته به اعلان داوطلبی می سپارد، برای مدت(۳) سال. کوردینات(جی.پی.اس نمبر) ٦۹,۱۷۲۱۹ ۳٤,۵۱۵۳٤۲
اشخاص حقیقی و حکمی که خواهان به کرایه گرفتن جایداد فوق را داشته باشند میتوانند در خواست های شان را بعد از تاریخ ( ۲۹/ دلو/ ۱٤۰۳ الی ۱۹/ حوت/ ۱٤۰۳) به ریاست عمومی املاک دولتی تسلیم نموده شرطنامه را اخذ نمایند.
آدرس:سینما پامیر تعمیر۱٤منزله، منزل٥، مدیریت عمومی ارزیابی قرار دادهای مرکزي.
شماره تماس: (0202924624-0202924607)
مجلس داوطلبی تاریخ ۲۰/ حوت/ ۱٤۰۳ به ساعت۰۰:۱۰قبل از ظهر برگزار میگردد.
این اعلان بتاریخ ۲۷ /۱۱/ ۱٤۰۳ از نشر باز مانده بود تاریخ تصحیح گردید امید است به روز دوشنبه مورخ ۲۹ /۱۱/ ۱٤۰۳ نشر گردد.

### اطلاعیه تصمیم اعطای قرارداد

بدینوسیله به اطلاع عموم رسانیده میشود, اینکه وزارت ترانسپورت و هوانوردی در نظر دارد که قرارداد اعمار تعمیر اداری راه ابریشم (مرکز وزارت) واقع شش درک، کابل را که دارنده نمبر تشخیصیه MOTA/1403/W-679-Rebid را به شرکت ساختمانی شکرالله کریمی که دارنده شماره جواز (D-۰۱-۳٦۷) و ادرس سرک عمومی مارکیت شکرالله کریمی ناحیه اول مرکز سرپل، سرپل میباشد به قیمت مجموعی مبلغ (۷۲،۳٤٦،۵۰٦) هفتادو دو میلیون و سصدو چهل و شش هزار و پنجصدو و شش افغانی اعطا نماید اشخاص حقیقی و حکمی که هر گونه اعتراض در زمینه داشته باشند میتوانند اعتراض خویش را از تاریخ نشر این اعلان الی مدت هفت روز تقویمی طور کتبی توأم با دلایل آن به ریاست محترم تدارکات وزارت ترانسپورت و هوانوردی ارائیه نمایند.این اطلاعیه به معنی عقد قرارداد نبوده و الی تکمیل معیاد فوق الذکر و طی مراحل قانونی بعدی, قرارداد منعقد نخواهد شد.

### اطلاعیه کندز

ریاست شاروالی خان آباد درسال ۱۴۰۳ محصولات تهجایی عواید مندوی برنج بازار و نو آباد سری اندرابی ها را برای مدت یک سال عقد قرارداد مینماید ، آنعده اشخاص و افرادیکه خواهش اشتراک در مجلس داوطلبی را داشته باشند ، از نشر اعلان الی مدت ۲۱ یوم درخواست های خویش را به ریاست شاروالی خان آباد سپرده و خود شان به روز داوطلبی در مقر ریاست شاروالی خان آباد حاضر شوند.
شرطنامه را میتوانند ملاحظه نمایند و تامینات نقدا اخذ میگردد.

### اطلاعیه مفقودی

یک جلد نکاح خط شرعی نمبر ۱۶۴۲/۴۴۸ مورخ ۲۷/ ۳/۱۴۰۲مرتبه محکمه مرافعه ولایت فاریاب به اسم غلام سخی فرزند خیر محمد ولدیت تاش علی ولدیت روشن بنت محمد سرور ولدیت سید عظیم مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۲۲۹۷

### اطلاعیه فروش امتیاز دواخانه

محترم عبدالستار فرزند عبدالوهاب ولدیت میرزا میر دارنده تذکره نمبر ( ۲۷۲۱۰۱۳۶) مسکونه اصلی ولایت پروان مالک امتیاز دواخانه نورز زاده شهید دلاوری واقع ناحیه دهم ولایت کابل معینیت غذا و ادویه عارض و خواهان فروش امتیاز دواخانه خویش بالای محترم عبدالحق دلاوری فرزند کاظم علی ولدیت خادم علی دارنده تذکره شماره ( ۰۸۰۶۴ - ۱۴۰۰۰-۰۹۰۱ ) مسکونه اصلی ولایت پروان گردیده است .اشخاص موسسات ودوایر دولتی در مورد ادعای داشته باشند از تاریخ نشر اعلان الی مدت ۱۰ روز به آدرس اداره ملی غذا وادویه افغانستان واقع ده افغانان تعمیر قبلی وزارت اطلاعات و فرهنگ مراجعه نمایند. ۹۳۰۱

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت برادران صدیقی لمتید یک عراده موتر پلیت ۶۳۵۵۴-۲ ش کابل نوع تیوتا کرولا غرفه دار جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای عزیز الله فرزند نور محمد بفروش رسانیده است.بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۲۹۹

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه وثیقه حصر وراثت خط شرعی نمبر ۹/ ۶۳۶ مورخ ۱۳۶۳/۳/۲۵ که مثنی آن ۴۰۰/ ۶۱ مورخ ۷۶/۲/۱۶ مرتبه محکمه وثایق شهر نو مربوطه ورثه سلطان احمد ذکریا فرزند سردار گل محمد مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۳۱۱

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت کیهان اللهی لمتید یک عراده موتر پلیت ۱۳۶۵۴- ۳ ش کابل نوع تیوتا کرولا سالون جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای عبید الله فرزند حبیب الله بفروش رسانیده است.بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۳۰۰

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه قباله عرفی نمبر ۲۱ مورخ ۹۸/۴/۱۷ جایداد واقع ناحیه دوازدهم شهر کابل به مساحت شش بسوه زمین به اسم گل خان فرزند سکندر خان ولدیت بازمحمد مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۳۱۴

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه قباله شرعی نمبر ۱۷۰/ ۴۱۱ مورخ ۵/ ۱۳۵۷/۲ مرتبه محکمه وثایق شهر نو مربوطه چهار باب آپارتمان سه باب دکاکین و دو دربند حویلی ملکیت بنده واقع شهر نو چهار راهی حاجی یعقوب به اسم عبد الله فرزند محمد هاشم مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۳۱۳

### اقتصادي بنديزونه؛ ...

اړیکو پراختیا هم د هېواد لپاره یو فرصت ګڼل کېږي. چین، روسیه، ایران او ترکیه چې د افغانستان د طبیعي منابعو د استخراج او پراختیا لپاره همکارۍ ته چمتو دي، د دې همکاریو له لارې د افغانانو لپاره د اقتصادي ودې نوې لارې پرانیزي.
همدارنګه، د افغانستان د حکومت هڅه دا ده چې د خپلواک اقتصادي پرمختګ لپاره د نړیوالو مرستو پر ځای د خپلو سرچینو او سیمهییزو همکاریو پر بنسټ خپلو اهدافو ته ورسېږي.
د افغانانو د اقتصاد د پیاوړتیا او د بندیزونو پر وړاندې د مقاومت لپاره باید ټول افغانان خپل داخلي ځواک وکاروي، د پانګونې فرصتونه رامنځته کړي او د بهرنیو تړونونو پرځای د خپلو ګټو پر اساس سوداګرۍ ته پراختیا ورکړي. دا کار نه یوازې د اقتصادي ستونزو د کمولو لپاره اړین دی، بلکې د هېواد د ځان بسیاینې لپاره هم حیاتي دی.
د دې لپاره، اسلامي امارت له خپل ملت سره ګډه هڅه کوي ترڅو په خپلو توانایيو باور وکړي او د بهرنیو دسیسو پر وړاندې په خپلواک ډول حرکت وکړي.
همدارنګه، مسلمانانو ته پکار ده چې د لویدیځ د تبلیغاتي جګړې ښکار نشي. دا دسیسې یوازې د دې لپاره دي چې افغانان د خپل اسلامي نظام پر ضد راپورته کړي او د هغوی په زړونو کې بې‌باوري رامنځته کړي. د لویدیځ هدف دا دی چې اسلامي امارت له خپلواکې اقتصادي ستراتیژۍ څخه ډډه وکړي او د هغه اقتصادي قدرت ته ضربه ورسوي. خو افغانان باید پوه شي چې دا ستونزې د دښمن دسیسې دي او یوازې د خپل نظام د ملاتړ له لارې کولی شي د دې فشارونو پر وړاندې مقاومت وکړي.
د دې لپاره چې افغانان په دې سختو شرایطو کې بریالي شي، باید له خپلو داخلي منابعو په پوره ډول استفاده وکړي، د هر ډول بهرنیو ستونزو په وړاندې د خپل اسلامي نظام ملاتړ وکړي او د هېواد دننه اقتصادي فرصتونه پراخ کړي. د افغانستان خپلواکي یوازې د افغانانو له خپلواکۍ سره تړاو لري او هغه وخت به د دې هېواد خلک د لویدیځ د فشارونو پر وړاندې بریالي شي چې د خپلو سرچینو او اقتصاد له لارې خپله راتلونکې وټاکي.
په پای کې، د لویدیځ د بندیزونو پر وړاندې د خپلواک اسلامي نظام ساتنه، د داخلي منابعو پراختیا او د نړیوالو همکاریو پراختیا ټولې هغه لارې دي چې افغانان یې باید په دې سختو شرایطو کې تعقیب کړي. د اسلامي امارت مشرتابه نه یوازې له خپلو منابعو څخه د استفادې پلانونه، بلکې د نوې نړیوالې اقتصادي کرنلارې د ټاکلو لپاره هم پراخې ستراتیژۍ لري. د افغانانو لپاره د دې شرایطو پر وړاندې بریا یوازې د خپل نظام په ملاتړ کې ده، ځکه چې که افغانان د خپل اسلامي نظام ملاتړ وکړي، نو دا نه یوازې د افغانستان لپاره بلکې د ټولې اسلامي نړۍ لپاره یو مهم پیغام دی.
افغانانو ته دا مهمه ده چې د لویدیځ د بندیزونو پر وړاندې د خپل نظام ملاتړ په پوره توګه تر سره کړي او د خپلو داخلي منابعو پراختیا ته دوام ورکړي. د دې مبارزې له لارې، نه یوازې د اسلامي امارت د قوت په اړه زیاتوالی راځي، بلکې د افغانستان د ټول ملت د استقلال او آزادۍ په لور به هم یو ګام واخیستل شي.
د افغانستان خپلواکي او اقتصادي ځواک د افغانانو لپاره د راتلونکي یو روښانه لوری دی، چې د بهرنیو فشارونو پر وړاندې باید هر اړخیزه همغږي ولري.

### هند؛ د اورګاډي تمځي ...

مذهبي جشن «مهاکوم میلا» کوربهتوب کوي، چې هر ۱۲ کاله وروسته ترسره کېږي او لسګونه میلیونه کسان پکې ګډون کوي.په هند کې له دې مخکې هم د مذهبي مراسمو پر مهال د ګڼې ګوڼې له امله په ورته پېښو کې سلګونو کسانو ژوند بایللی. په وروستیو کې د هند د اوتاپرادش ایالت ځایي چارواکو ویلي وو چې د دې ایالت په «اله آباد» ښار کې د «کومبه میلا» په مذهبي مراسمو کې د ګڼې ګوڼې له امله لږ تر لږه اووه کسان مړه او لس نور ټپیان شوي وو.

### اروپا به د اوکراین ...

مایکل مک کال رویټرز ته ویلي، د امریکا د بهرنیو چارو وزیر مارکو روبیو د ملي امنیت سلاکار او منځنۍ اسیا کې د سپیني ماڼۍ ځانګړي استازي به ژر سعودي عربستان ته سفر وکړي.په ورته مهال اروپایي هېوادونه د سولې خبرو کې د ګډون لپاره بېړنۍ غونډه رابولي.د المان لومړي وزیر ویلي، اوکراین کې تپل شوې سوله به ونه مني.د یادونې وړ ده، چې د امریکا ولسمشر ټرمپ واک ته له رسېدو سره سم ویلي، چې د اوکراین او روسیې روانه جګړه به پای ته ورسوي او په دې اړه یې هڅې پیل کړې، چې تازه اقدام کې یې تېره اوونۍ د روسیې ولسمشر سره اوږدې ټیلفوني خبرې کړې وې.

### د کندهار - هرات ...

ډیزاین چارې د شاوخوا ۲۶۴ میلیونو افغانیو په ارزښت پیل شوې.نوموړي زیاته کړې؛ د پرانیستې په مراسمو کې یې د اسلامي امارت ویاند مولوي ذبیح الله مجاهد، د ټولګټو وزارت د وسپنیزې کرښې مرستیال مولوي محمد اسحاق صاحبزاده، سیمه ییزو مسئولینو، قومي مخورو، د قراردادي شرکتونو مسئولینو او انجنیرانو ګډون کړی و. د ښاغلي حق شناس په وینا، یاده پروژه به د اتو میاشتو په موده کې بشپړه شي.

### لـه افغانستان سره ...

د ایران سفارت چابهار بندر کې د افغانستان د استازو د شتون په لټه کې دي. د یادونې وړ ده، چې دا مهال د افغانستان او ایران اړیکې په لوړه کچه کې دي او د دواړو هېوادونو چارواکي تل د دوه اړخیزو اړیکو پر لا پیاوړتیا ټینګار کوي.

### لوګر کې ۳۰ کانونه ...

درکه شاوخوا ۲۲۵ میلیونه افغانۍ عواید ترلاسه کړي او د حکومت خزانې ته یې جمع کړي دي.د ده په وینا، د اسلامي امارت له راتګ سره سم په لوګر کې د غیر قانوني استخراج بشپړ مخنیوی شوی دی او که چېرې په دې تړاو په کومه سیمه کې څوک ونیول شي چې غیر قانوني استخراج ترسره کوي، قانون ته به وسپارل شي. دا په داسې حال کې ده چې تېره میاشت د افغانستان د کانونو او پټرولیم وزارت خبر ورکړی و چې د لوګر د مرکز پل علم ښار اړوند په «التمور» سیمه کې د څه باندې سل میلیونو افغانیو په ارزښت د ۴۰۰ ټنو په ظرفیت د سیمنټو د تولید فابریکه هم جوړیږي.

### خوست کې یو شمېر ...

کې ۲۹۶ میلیونه افغانۍ او په ۱۴۰۳ کال کې ۵۳۸ میلیونه افغانیو ته رسېدلي دي.د یادو پروژو په بشپړېدو سره، د خوست ښار اوسېدونکي خوښ دي او له مسئولینو د ورته ډېرو ټولګټو پروژو د پلي کولو غوښتنه کوي.

### د افغان - ټرانس ...

پروژې د پرمخ بیولو لپاره د ترانسپورت او لوژستیک له کمپنیو سره خبرې وکړي. د افغانستان له لارې د ریلګاډې په وسیله د ازبیکستان او پاکستان د نښلولو د پروژې موافقه په ۲۰۱۸ کال کې د افغانستان د مخکني حکومت، پاکستان او ازبیکستان ترمنځ لاسلیک شوه. د دې۵۷۳ کیلومتره ریلارې د جوړولو لګښت څه باندې خلور نیم ملیارده ډالره اټکل شوی دی. د پلان له مخې، دغه پټلۍ به له مزارشریف څخه تر غلام خان بندر پورې وغځول شي.

### ننګرهار کې د بېلابېلو ...

او ولسوالیو کې ۶۲۱ جنایي قضیې ثبت شوې، چې له مخې یې۱۲۹۴کسان د جنایي جرمونو په تور ، ۴۵۴ کسان د نشهیي توکو د قاچاق په تور، ۱۰۵ تنه د تروریزم ضد مدیریت له خوا او ۱۲۳ کسان د قاچاقي توکو د کاروبار په تور نیول شوي دي.د ننګرهار د امنیې قومندانۍ مرستیال وویل، چې د نیول شویو کسانو دوسیې عدلي او قضایي ارګانونو ته سپارل شوي او له هغوي سره به د قانون مطابق چلند وشي.
مولوي محمد طاهر مبارز د ننګرهار خلکو ته د لا ښه امنیت ډاډ ورکړ او ټینګار یې وکړ، چې پولیس د امنیت د لاټینګېدو هڅې کوي.ده له خلکو وغوښتل، چې د جنایي جرمونو د مخنیوي او د مجرمینو د نیولو په برخه کې له پولیسو سره همکاري وکړي.

### د سپین بولدک له ...

خپل هېواد ته راستانه شوي دي.د یادونې وړ ده، چې له یادو کورنیو سره د اسلامي امارت د اړوندو ادارو له لوري نغدي مرسته شوې او مرستندویو موسسو ته د لا نورو مرستو په موخه ورپېژندل شوي دي.

### برښنا شرکت خپلې ...

چې په خبره یې په تطبیق سره به یې د برښنا په ضایعاتو کې د پام وړ کمښت راشي.
ده دغه راز څرګنده کړه، چې د هېواد په بېلابېلو ولایتونو کې د برښنا رسولو د لویو او وړو پروژو، چې تر کار لاندې دي، له بشپړتیا وروسته به ګڼ هېوادوال برښنا ته لاسرسي ولري.
د معلوماتو پر بنسټ له همدې امله د شاوخوا ۵۰۵ میګاواټه برښنا ظرفیت لرونکو تولیدي فابریکو جوړولو لپاره د پانګونې د ۱۴ پروژو د طرحو د تحلیل او ارزونې چارې بشپړې شوي دي. د برښنا شرکت د راپور له مخې د میدان وردګو د چک، د کونړ مناګي او د ګرشک د برښنا د تولید بندونو د جوړولو او بیارغولو چارې رواني دي، په داسې حال کې چې د یو شمېر برښنایي تولیدي فابریکو او پروژو چارې بشپړې شوي دي. د مسئولینو په خبره، د نورالجهاد سب سټېشن چارې، چې ۳.۲۹ میلیونه امریکایي ډالره لګښت پرې راغلی، تکمیل او ګټې اخیستنې ته سپارل شوي، چې د پېرودونکو شمېر یې له ۱۲۰ زرو څخه ۱۵۰ زرو ته لوړ شوي دي. د دې تر څنګ د پنجشیر ولایت د پارندې برښنا تولیدي بند د رغونې چارو بشپړېدل، د شبرغان - دشت الوان - ارغندی د ۵۰۰ کیلو ولټه برښنا لیږد مزي، د غزني- کندهار ۲۲۰، د کندهار ۱۱۰ کیلوولټ سب سټېشن لاین بې، د هرات څلورو ولسوالیو کې د سب سټېشنونو جوړولو او په بادغیس کې ۲۱ کلیو ته د برښنا د وېش شبکې جوړولو پروژو د پاتې چارو پیل او دوام هغه څه دي، چې د برښنا شرکت یې په وروستیو شپږو میاشتو کې د نورو لاسته راوړنو په توګه یادوي. د راپور پر بنسټ، په تېرو شپږو میاشتو کې یې د ۵۶ زره انالوګ مېټرونو له جملې څخه څه باندې ۳۷ زره ډیجیټل مېټرونو ته اړولي چې په پایله کې یې تر ډېره بریده د برښنا د ضایعاتو مخه نیول شوې ده. د دغه شرکت عملیاتي رئیس انجنیر صفي الله احمدزي وویل، چې د روان کال په اوږدو کې د څه باندې ۳.۵ میلیاردو افغانیو په ارزښت، د برښنا اړوند د ۲۰۶ پروژو تړونونه لاسلیک شوي چې د ځینو پروژو چارې بشپړې او د ځینو کارونه لا هم دوام لري. ښاغلي احمدزي ټینګار وکړ، چې د برښنا پېرلو له درکه ګاونډیو هېوادونو ته د ۲۲۷ میلیونه امریکایي ډالرو په ورکړې سره یې د هېواد ټول پورونه خلاص کړي او اوسمهال شرکت دبرښنا پېرلو له درکه د هیڅ ګاونډي هېواد او کورني شرکت پوروړی نه دی. ده دغه راز وویل، چې په روان کال کې یې د برښنا د پلور له درکه په ټولیز ډول ۳۱ میلیارده او ۵۳۱ میلیونه افغانۍ عواید راټول کړي دي. د برښنا شرکت مسئولینو خبر ورکړ، چې د نړیوال بانک له خوا د کاسا زر سیمه ییزې پروژې پاتې کارونه بیا پیل شوي، چې په دوو کلونو کې به سر ته ورسېږي.
نذیر منیب

### د زابل شهر صفا کې نږدې ...

چې اسلامي امارت په بیا واکمنېدو سره په هېواد کې سلګونه زره جریبه ځمکه د غاصبینو له منګولو خلاصه کړې ده او په دې برخه کې لا هڅې رواني دي.

### فراه کې د ځاځکي ...

یو ځل ۱۰ متره مکعبه اوبه زېرمه کولی شي او ۲۵ جریبه ځمکه خړوبوي.د فراه د کرنې ریاست مسئولین وایي، چې د دې پروژې موخه د اوبو لګولو ښه مدیریت او د کرنې عصري کولو ته وده ورکول دي.

### کابل کې د بهرنیو ...

د یادولو وړ ده چې د عدم مسئولیت جرمي سندونه د لاندې پُست خونو له لوري طی مراحل کیږي:
۱ – مرکزي پُست خونه، چې د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ وزارت په دننه کې موقعیت لري.
۲- د دریمو مکروریانو پُست خونه، چې د ستري محکمې د دروازې ښې لوري ته موقعیت لري.
۳- د اریا ښارګوټي پُست خونه، چې د اول فاز چپ لوري ته لومړي مارکیټ کې موقعیت لري.
۴- د قلعه فتح الله پُست خونه، چې د قلعه فتح الله په نهم سرک کې موقعیت لري.
۵- د قصبې پُست خونه، چې د ملي پراختیا شرکت د دروازې ښي لوري ته موقعیت لري.
۶- د خیرخانې پُست خونه، چې یوولسمې امنیتي حوزې ته څېرمه موقعیت لري.
ټول مراجعین دي له پورتنۍ نېټې څخه وروسته د بهرنیو سندونو او عدم مسئولیت سندونو د طی مراحلو په پار د بهرنیو چارو وزارت ته مراجعه ونه کړي او خپل سندونه دې د پورتنیو یادو شویو پُست خونو له لارې طی مراحل کړي.

### مولوي عطاء الله عمري ...

عمري د یاد سازمان له هڅو مننه کړې او ټینګار یې کړې، چې د کرنې او مالدارۍ په بېلابېلو برخو کې د بنسټیزو او پراختیایي پروژو عملي کول د خلکو د اقتصادي وضعیت د ښه والي او د بزګرانو او مالدارانو د ژوند د پرمختګ لپاره مهم ګام دی.د یادولو وړ ده، چې د ملګرو ملتونو د خوراک او کرنې سازمان د افغانستان د بزګرانو او مالدارانو د ملاتړ یوه مهمه اداره ده، چې هر کال زرګونو کسانو ته مرستې برابروي.

### د پل خشتي تر ځمکې...

جوړېدل اغېزناک ګڼي؛ خو د پلازمېنې په نورو برخو کې د ورته ځمکتلونو د جوړېدو غوښتنه کوي. د کابل اوسېدونکي عبدالحمید وایي: (( د دې ځمکتل جوړېدل یو ډېر ښه کار دی. خلک هم د ګڼې ګوڼې له ستونزو خلاصېږي او زموږ هېوادوال کولای شي له دغه ځمکتل څخه چې، ډېرې اسانتیاوې لري، ښه ګټه واخلي.))د اسلامي امارت له واکمنېدو وروسته، د سړکونو، کانالونو، زرغونو سیمو او سوداګریزو مرکزونو په ګډون په بېلابېلو برخو کې د رغونې چارې پیل شوې دي.

### د هرات د ملي نګارستان...

میراثونو د ساتنې او د هرات د تاریخي هویت د معرفي کولو پر اهمیت ټینګار وکړاو په دې برخه کې یې د ټیکا دفتر له همکاریو مننه کړې ده.

# Hewad Daily

د ورځپاڼو رئیس : انجنیر عُزیر« بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷۴۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ
کابل - افغانستان
داړیکو شمېره: س ۲۵۲۶۳۴۰ - ۰۲۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼې انټرنېټي پاڼې دلاندې وېب سایټ له لارې هم کتلی شئ
ویب سایت: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع څانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶-۰۷۳۶۰۶۰۷۳

دوشنبه د شعبان المعظم ۱۸ مه ۱۴۴۶ق کال د ۱۴۰۳ ل کال د سلواغې۲۹ مه د 2025م کال د فبروری ۱۷ مه


## برښنا شرکت خپلې شپږ میاشتینی کړنې او لاس ته راوړنې رسنیزې کړې




د برښنا شرکت مسئولینو رسنیو ته د خپلو وروستیو شپږو میاشتو د کړنو او لاس ته راوړنو په اړه معلومات ورکړل. د برښنا شرکت لوي رئیس عبدالباري عمر په همدې اړه جوړې شوې غونډې ته وویل، په یاده موده کې د برښنا شبکې د پراختیا، اصلاح، برښنا رسونې، عملیاتي چارو، برنامو او له ګاونډیو هېوادونو څخه د وارداتي برښنا په برخه کې د پام وړ لاسته راوړنې لري. ښاغلي عمر وویل، په روان کال کې یې په مرکز او ولایتونو کې ۶ اصلاحي پروژې پلان کړې وې، چې دمګړۍ د تجهیزاتو چمتو کېدو پړاو کې دي، **۳مخ**

## د زابل شهر صفا کې نږدې ۱۲۶ زره جریبه ځمکه دولتي تثبیت شوه

د عدلیې وزارت خبر ورکړي، چې د زابل ولایت د ځمکو له غصب څخه د مخنیوي کمېسیون تخنیکي ناسته کې د دغه ولایت شهر صفا ولسوالۍ کې د ۱۲۵ زره ۹۵۰ جریبه ځمکې د دوسیې په اړه بحث شوي، چې په ترخ کې یې دغه ځمکه امارتي تثبیت شوې. وزارت وایي، همدارنګه په یاده ناسته کې د زابل ولایت د بېلابېلو ساحو د غصب شویو ځمکو اړوند یو شمېر نورې دوسیې هم بررسي شوې او په اړه یې لازمې پرېکړې و شوې. یاده دې وي، **۳مخ**

## فراه کې د څاڅکي اوبو لګولو سیستم فعال شو




په فراه ولایت کې د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست په هڅو د ۲.۴ میلیونه افغانیو په لګښت یو کانال او د څاڅکي اوبو لګولو سیستم فعال او ګټې اخیستنې ته وسپارل شول.

د یاد ولایت د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ رئیس مولوي شاه محمد سروري د دې پروژې د پرانیستې پر مهال وویل، چې د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت له پراختیایي بودیجې څخه د فراه ښار په کښتني ننګاب کلي کې د ۵۰۰ مترو په اوږدوالي یو کانال جوړ شوي او همدارنګه په باغ نو سیمه کې د څاڅکي اوبو لګولو سیستم فعال شوي دي.د نوموړي په وینا، دغه سیستم په **۳مخ**

## کابل کې د بهرنیو سندونو د تصدیق او د عدم مسئولیت جرمي فورمو چارې اسانه شوې



د بهرنیو چارو وزارت د قونسلي چارو ریاست د مراجعینو لپاره د قونسلي خدمتونو په برخه کې د لا آسانتیاوو د برابرولو او د وخت ضایع کېدو او د بهرنیو چارو وزارت ته د راتګ د تکلیف او انتظار د مخنیوي په موخه په پام کې لري، چې په بهر کې د افغانستان اسلامي امارت د سیاسي او قونسلي استازولیو له خوا صادر او تصدیق شوي ټول بهرني سندونه او همدارنګه د عدم مسئولیت جرمي فورمې په کابل ولایت کې د افغان پُست امارتي شرکت د بیلابیلو څانګو له لارې راټول او بېرته سپارل کیږي.له همدې امله د ۱۴۰۳ کال د کب میاشتې له لومړۍ نېټې څخه د بهرنیو سندونو د تصدیق مراجعین باید خپل سندونه (مرکزي پُست خونې) ته، چې د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ په وزارت کې قرار لري وسپاري او له تصدیق وروسته سندونه بېرته له همدې پُست خونې څخه تسلیم کړي. **۳مخ**

## د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت پلاوی بدخشان ته تللی



د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د ګرځندوي، مالي او اداري چارو د مرستیال مولوي قدرت الله جمال په مشرۍ یوه پلاوي بدخشان ته د خپل سفر په ترخ کې د یاد ولایت د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست له بېلابېلو برخو څخه لیدنه کړې.
یاد پلاوي د دې لیدنې پرمهال د یاد ریاست فعالیتونه مهم او حیاتي بللي.د ګرځندوي، مالي او اداري چارو مرستیال مولوي قدرت الله جمال ویلي، د محلي حکومت لاسته راوړنې او فعالیتونه باید د دې ریاست د خپرونو له لارې خلکو ته ورسول شي.نوموړي د خپل سفر موخه د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست له مسئولینو او کارکوونکو څخه لیدنه، د ستونزو اورېدل او د دې ریاست د کاري لاسته راوړنو ارزونه یاده کړې.ښاغلي جمال د اطلاعاتو او فرهنګ ریاستونه د محلي حکومت د فعالیتونو ژباړونکي او انعکاس ورکوونکي بللي. همدا راز د بدخشان د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست د هنر او کلتور آمر محمد عارف فاروقي د دې ریاست د تاسیس، د ځوانانو، کلتور، هنر، اطلاعاتو او ګرځندوي آمریتونو د کاري استقامتونو په اړه مفصل معلومات ورکړي او د بدخشان د تاریخي ابداتو د ساتنې لپاره یې د پاملرنې غوښتنه کړې.ښاغلي فاروقي ویلي: بدخشان کې ۲۹ تاریخي ابدې، ۱۲۰ تفریحي سیمې، ۱۱ راډیوګانې او درې ټلویزیونونه شتون لري، همدارنګه کلتوري پروګرامونه او مشاعرې د فرهنګیانو په همغږۍ په دوامدار ډول ترسره کېږي.

## د هرات د ملي نګارستان آمریت ودانۍ د بیا رغولو چارې پیل شوې

په هرات ولایت کې د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست د ملي نګارستان آمریت د ودانۍ د بیا رغونې چارې پیل شوې دي.د هرات د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست د فرهنګ او هنر آمر مولوي حمیدالله غیاثي د دغې پروژې د پرانیستې پر مهال وویل، چې دا پروژه د ترکیې هېواد د (تیکا) دفتر په مالي ملاتړ پلي کېږي، چې موخه یې د تاریخي او فرهنګي اثارو ساتنه او بیا احیا کول دي.نوموړي زیاته کړه، چې د دغې پروژې په بشپړېدو سره د داخلي تاسیساتو امکانات ښه کېږي او د هنري اثارو د ننداره لپاره مناسب شرایط برابرېږي.مولوي غیاثي د فرهنګي **۳مخ**

کابل ښاروالي:

## د پل‌خشتي تر ځمکې لاندې مارکېټ د جوړولو چارې ۹۰ سلنه بشپړې شوې

کابل ښاروالۍ د کابل د پل‌خشتي په ځمکتل کې د مارکېټ جوړېدو چارو له ۹۰ سلنې پرمختګه خبر ورکوي.د دغې ښاروالۍ استازي نعمت‌الله بارکزي په ځمکتل کې د دغه مارکېټ د جوړولو موخه په یاده سیمه کې د ګڼې ګوڼې راکمول او د سوداګریزو مرکزونو جوړېدل بولي.دا سیمه د کابل ښار له تاریخي او ګڼ مېشتو ځایونو ګڼل کېږي، چې لا هم د پخوا په څېر ګڼه ګوڼه لري. د کابل ښاروالۍ استازي رسنیو ته ویلي: (( د پل‌خشتي جومات په سیمه کې یو ځمکتل جوړېږي چې څه باندې ۹۰ سلنه کار یې بشپړ شوي او ټولیزه موخه یې، د سوداګریزو مرکزونو جوړول او په هغې سیمه کې د سړک غاړې ته د توکو د پلور له‌منځه وړل دي.))دغه ځمکتل د هېوادوالو لپاره د تګ راتګ شپږ لارې لري او ۳۶۰ هټۍ هم په‌کې جوړېږي.د ځمکتل د پروژې کارګر اجمل په دې هکله رسنیو ته ویلي: (( دا یوه ملي او ارزښتناکه پروژه ده، چې ۳۶۰ هټۍ او شپږ لارې لري.))بله‌خوا، د کابل یو شمېر اوسېدونکي که څه هم د ګڼې ګوڼې په کمولو کې د دغه ځمکتل **۳مخ**

## مولوي عطاء الله عمري د ملګرو ملتونو د خوراک او کرنې سازمان له رئیس سره وکتل



د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ وزیر مولوي عطاءالله عمري د ملګرو ملتونو د خوراک او کرنې سازمان له رئیس ریچارد ترانچارد سره په خپل دفتر کې لیدنه کړې.په دې لیدنه کې د کرنیزو، مالدارۍ او اوبو لګولو دوامداره پروژو د پیل، د سړو خونو، د لبنیاتو د پروسس کارخونو، مسلخونو، د اوبو لګولو شبکو او د مالدارۍ فارمونو د جوړولو په اړه خبرې شوې دي.ریچارد ترانچارد د لیدنې په پیل کې په افغانستان کې د ملګرو ملتونو د خوراک او کرنې سازمان د فعالیتونو راپور وړاندې کړي او د نړیوالو هېوادونو او ادارو له لوري د افغان ولس د ملاتړ پر ژمنو یې خبرې کړې دي.نوموړي همداراز د برېتانیا حکومت له لوري د ۴۵ میلیونه ډالرو مرستې اعلان ته اشاره کړې. مولوي عطاءالله **۳مخ**

## بهرني لنډ خبرونه

## سویلي افریقا له غزې د ملاتړ په برخه کې خپله ژمنه تازه کړې



د سویلي افریقا د بهرنیو چارو وزیر ویلي، چې دغه هېواد به له غزې څخه د ملاتړ په اړه خپلو دریځونو کې هیڅ بدلون نه راوړي.ده زیاته کړې، چې ګڼ شمېر افریقایي هېوادونه په دې اړه یو متحد دریځ لري او د فلسطین د بحران د حل لپاره د «دوه دولتي حل لارې» ملاتړ کوي.سویلي افریقا په ۲۰۲۳ ز کال کې د غزې په اړه د اسرائیلو پر ضد نړیوالې محکمې کې شکایت وړاندې کړی و، چې پکې د اسرائیلو رژیم پر نسل وژنې ملامت کړای شوی و.دا اقدام د سویلي افریقا د قوي ملاتړ د څرګندونې په توګه ګڼل کېږي.بله خوا د فلسطین اسلامي مقاومت غورځنګ (حماس) د امریکا د ولسمشر ډونالډ ټرمپ وروستیو څرګندونو ته په غبرګون کې ویلي، که ټرمپ د اسرائیلي اسیرانو ژوند ته اندېښمن وي، باید پر اسرائیلو فشار راوړي ، ترڅو د اوربند تړون پلې کړي. حماس ټینګار کړی، چې د ټرمپ څرګندونې د واشنګټن تر څار لاندې، شوي تړون سره په ټکر کې دي.د غزې بحران نه یوازې د فلسطیني خلکو لپاره، بلکې د نړیوالې سولې او ثبات لپاره هم یوه ستره معضله ګرځېدلې، چې اسرائیلو رامنځته کړې ده.

## اروپا به د اوکراین د سولې خبرو کې شتون ونه لري

اوکراین کې د امریکا د ولسمشر ډونالډ ټرمپ ځانګړي استازي ورمه ورځ د مونیخ نړیوال امنیتي کنفرانس کې ویلي: اروپا به د اوکراین د سولې خبرو کې رول ونه لري. نړیوالو رسنیو خبر ورکړی، چې نږدې راتلونکې کې به د امریکایي چارواکو په شتون کې د اوکراین د سولې خبرې د سعودي عربستان پلازمېنه ریاض کې پیل شي.د امریکا د کانګرس استازي **۳مخ**



## هند؛ د اورګاډي تمځي کې د ګڼې ګوڼې له امله ۲۷ تنو ته مرګ ژوبله اوښتې

هندي چارواکي وایي چې د نوي ډیلي د اورګاډي په یو تمځي کې د ګڼې ګوڼې له امله لږ تر لږه ۱۵ کسان مړه او ۱۵ نور ټپیان شوي دي.هندي رسنیو راپور ورکړی چې دا پېښه ورمه شپه شاوخوا اته بجې د هیواد په پلازمینه نوي ډیلي کې په «رېل‌سټېشن» کې شوې ده. بله خوا د رویټرز په راپور کې ویل شوي ،چې په مړو شویو کې ۱۰ ښځې او ۳ ماشومان هم شامل دي.دا مرګوني پېښه هغه وخت رامنځته شوه کله چې مسافرو په «پریاګراج» ښار کې د «مهاکامب» هندوانو په مذهبي جشن کې د ګډون لپاره په اورګاډي کې د سپرېدو لپاره هیاهو جوړه کړه. د هند لومړي وزیر «نریندرا مودي» هم په ایکس پاڼه د پیښې له قربانیانو سره خواخوږي ښودلې او ویلي یې دي:(( زه د نوي ډیلي د اورګاډي په تمځي کې د ګڼې ګوڼې له امله اندېښمن یم.))پریاګراج ښار د هندوانو د تر ټولو ستر **۳مخ**

